# د شګي ګل

د ننګرهار د ولسي شاعر سید کمال لومړۍ شعري ټولګه



راټولونه او سریزه

دلال پاچا ازمون

۱۳۷۷ لمریز




# د "شګې" ګل

د ننګرهار د ولسي شاعر سید کمال شعري ټولګه




راټولنه او سریزه

د

لال پاچا ازمون

۱۳۷۷ لمریز

ط

## کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| نوم | : | د "شګې" ګل |
| ویناوال | : | سید کمال |
| خپرندوی | : | دانش کتابپلورنځی. ډکي نعلبندي. قصه خواني. پېښور |
| د چاپ کال | : | ۱۳۷۷ل. ۱۹۹۸ز. |
| چاپ شمېر | : | ۵۰۰ ټوکه. |
| لیکګر | : | صدیق الله بدّر |

# ډالۍ

ادبي باندار ملګرو ته چې شاعري او فرهنګي هلې ځلې يې زما په زړه کې ډېرې هيلې را ټوکوي، عبد الغني هاشمي، ببرك مياخېل، سيد الياس صداقت، اجمل اند، بشير احمد پرهر، منقاد الرحمن رودوال، يونس خوښ، عبد الله څار، خان محمد ستانکزی، امان الله پرتم، عزت الله ځواب، رحيم الله سمندر.

ازمون

e

# د سید کمال ځاني او هنري ژوند

ورشه ای ربیاره سید کمال ته داسې وایه
نور لېمه دې فرش کړه بو جان ږدي قدمونه

پیلامه:

که کله هم خبره د ولسي شعر او شاعر په باب راځي نو په مخکې مو بېدیاني ګلونه ودرېږي، چې پخپل سر راټولوی شي او بالاخره پاڼې پاڼې ورشېږي.

د ولسي شعر رنګ، ښکلا او ژوند هم د بېدیاني ګل په شان طبعي دی. د دغه شعر خوند او ژوند د هماغه ګل د باد په ترنم کې نغښتی چې را والوځي وېښ یې کړي، وږمې یې خورې کړي او بالاخره له ځانه سره یې یوسي، دا چې د اولسي شعر یوه ځانګړې بېلګه تر دې دمه راپاتې وه دا هم یوازې او یوازې د موسیقۍ د پردو غږ دی. دا هغه شعر دی چې په موسیقۍ کې زوکړې دی، له یوې خولې بلې ته یې لار پیدا کړې، په زړه خوږ لګېدلی او د ذهن په پردو کې د خپل ځانګړي موسیقیت په لرلو سره ثبت شوی دی، او دا دی له ډېرو کږلېچونو اوښتی او تر دې دمه یې ځان په نیم ژواندي ځان را رسولی دی. نو اوس خبره دا ده چې موسیقي او ولسي شعر یو له بله نه بېلېدونکي اړخونه دي.

زموږ په اولس کې ښایسته ډېرې داسې غوره بېلګې ژوندۍ دي چې نن یا
بیخي ښتنه او یا هم کمه شته نو . خوله په خوله داسې رالېږدل شوي
چې اوس یې یا مغه پخوانی رنګ بدل شوی او یا یې هم ډیرې کمې غوړځیدلې دي.

څرنګه چې په اولس کې دلیک او زده کړې ورنه و نو دا نمونې هم تر یو وخته
د خلکو په حافظو کې د موسیقۍ په زور ساتل شویدي . زموږ د ولسي
شاعر او شعر یو غوره صفت دا دی چې دی د نورو ژبو او فرهنګونو تر اغیز
لاندې نه دی راغلی ، دی یوازې او یوازې د خپل چاپیرچل په ژبه ، اند
ښېرونو او دود غږیدلی . د موسیقۍ څپې یې هم د خپل اند زیږنده دي چې
د همدغه اند په رڼاکې یې بدلې ، لوبې ، چاربیتې او په زرهو ملي وزنونو یې خپلې
خبرې غځولې دي . نو زموږ شعر او زموږ ولسي شاعر د خپل چاپیرچل د -
غوښتنو او دود دستورو ته پروت دی او د همغوی ترجماني کوي . په ولسي
شعر کې د کره او سوچه ژبې په ویلو د عشق خبرې ، نادودې ، د ظالم او
مظلوم شېرې ، ګوت نیونې ، دردونه او ډول ډول اړخونه کښل شوي دي
لکه څنګه چې چاپیرچل یې خپل دی ، ژبه یې خپله ده ، موسیقي یې خپله ده
او ... د دغه شعر یو بل غوره صفت دا دی چې تردې دمه یې د څېنو -
دودونو « چې اوس مړه دي » او ویینو ژوندي ساتلو یاړ ګټلی .

همدا اوس په دغو شعرونو کې داسې ډېر بېلګې پیدا کولی شو چې
کلیواله ژبه ، لهجې ، اصطلاحات او ویینو یې ژوندي ساتلي . همدغه
خبره وه چې پر دغه شاعرۍ کې هیڅ ډول پردی اغیز نه لیدل کیږي .

که دبیلګې په توګه د هر شعر شکلي او مضمون څیړو نو به وو وینو

دویم

چې وبیونولې په عشقي برخه کې د خپل کلي هماغه گودر، ونه، ښنگړې
نکریزې، چنار، ونه، چارگل، پیزوان، ټکه او ... اغوړي او کړلړې
برید راوړي او یو شمیر تاریخي، فولکلوریکي او مذهبي کیسې یې هم په خپله
منظومه غیږ کې ژوندۍ ساتلې. د دغو شعرونو د پایښت خبره هم له دې
څخه جوتیږي چې د شکل او مضمون له پلوه هیڅ ډول تصنع او تکلف
په کې نه ښکاري او زړونو ته یو خاص موسیقیت کې لاره باسي. د پاپښت
پله خبره یې هم د روحانیت او سپیڅلي مینې اغوړنه ده.

نو د دغو خبرو په رڼا کې د ښېښتنو په ډېرو سیمو کې تر دې دمه ډېر ښے
داسې نمونې په خولو کې اوړي راوړي. اوس که د اولسي شاعرۍ سیمې ز
لسنتلیک، جدول، وکنبل شي، نو په هغه کې به یوه هم د ښکرهار. فرهنگ ر لکړې
سیمه وي، د هغې سیمې تر او سره په خپله غیږ کې ډېر ښایسته استعدادونه -
روزلي او اقتصادي، ټولنې ته یې وړاندې کړیدي. د دغو شاعرانو په لسنتلیک
کې یو هم ولسي شاعران دي، چې د ځینو یې دا دې ډومره شعرونه ژوندي
پاتې دي چې یوه وړه ټولگه ترې برابر شي او د ځینو خو لوړې او لیوالړې نوم
ژوندي دي او بس. نو فولکلور ټولونکي تر خپلې وسې پورې پړدي.

هیڅوک نه شي کولای چې په یو ولسي شعر د ښېړې کښني حکم وکړي
څکه ولسي شاعري خپله شاعرته لکه د باد غرندې راشي او لاړه شي. یخپله -
ولسي شاعران چې به کومه بیلگه داوړو له نو هغه بیلگه به د ټولنې غیرزه
ولمیه مستقل به شوه او حتی تر دې چې له ونیا وال به یې هم یوه نیمه کړه،
بیت کمیده یا زیاتیده او په خپل شکل به نه پاتې کیده. په دغه شاعرۍ کې په

درنیم

ab

اکثره في البدیعه شعرونه هم وو، چې هلته به ونیز دیدل یا به یې کې د بیـــر تغییرات راغلل او یا به هم د مرګ په منګولو کې بنکیل شول. نو دا دی معزته اوس د پیداسې ولسي شاعر نیمګړې توګه په مخکې پرته ده چې ویل کیده د څو پټولګو شاعري یې کړیده .

دده د شاعرنه څانګړې توګه نه ده خپره شوې، تردې د هم دده شعرونه څه په لیکلي بڼه او څه هم د ولسي هنرمندانو او عامو په خوله کې غځوني کوي . موږ ترخلپې وسې له یوه او بله او څه هم له کتابونو د ده شاعري راټوله کړه او ستاسې مخ ته مو کیښوده .

## — ځاني ژوند :

سیدکمال د ننګرهار ولایت په شګه کې* زوکړی دی. تر اوسه پورې دده د زوکړې وخت په سمې توګه نه په کتابونو کې کښل شوې او نه د چا په یاد دی . خو بیا هم د ولسي سندرو په لومړی ټوک کې د ده د ژوند زمانه (۱۲۵۰) [1] لمریز کال کښل شوې ده . د دې د دغې زمانې د سپینو دوسرو د ننګرهار د بنیمي د یو بل شاعر توکل هم معالیه راځي .

د نوموړي د مرګ تاکلې نیټه هم نه ده کښل شوې، خو د سپین‌ږیرو خلکو له خولې د ده د مرګ نیټه د « لس‌ګوته » کاله وړاندې اټکل کیدای شي.

پر بل روایت ۱۱۹ کاله وړاندې له نړۍ مړ دی. و. ګ . د ننګرهار سفرنامه - ر پښتو

---

* نوموړي د ښکلي برې شمال تر د میا ګانو په کلي کې زوکړی دی ، په مشرقي خم ژغرکلي کې اوسیږي .

[1] هیواد مل زلمی ، ولسي سندرې ، لومړی ټوک ، ۳۸ مخ ، د افغانستان د علومو اکادمي ، ګوندي چاپخونه ، ۱۳۶۱

ac

د دغه شاعر په باب د ننګرهار په ننداره نومې کتاب کې د شاعر
د قبر تر نامه لاندې داسې لیوه منظر کښلي شویده:

د پښتو ژبې د یو غم ځپلي لوړ شاعر د قبر خواته ورسید و د دې
غم ځپلي شاعر قبر د لوېږي لارې په غاړه د «ببوجانۍ» د کلي «میاګانو کلي»
په څنګ کې پروت دی. د دربوبه څنګ کې د ده د قبر ځنګې ځنګې شنا ختي لــه
وړاندې سنګارې، خواته یې د غزه یوه لویه ونه ولاړه ده چې له پالنې څخه یې
د ده د مینې نرې نرې فریاد راخیژي. د قبر لمر خاته پلو ته یې د ژوندون
د ترخو ورځو په یادګیرنه کې د ګنه یرې یو بوټی لیدل کیږي. په دې ځای
کې د تمه ورخاورو لاندې د تنشو پنجرو په منځ کې د عشق په کتابو ژوبل
زړه پروت دی او لیوانې او لیونې د «ببوجانۍ» مینه ور سره ملګرې
ده او داهغه پاکه خاوره ده چې په ژوندوني یې کې د ببوجانۍ لیدن کړی او،
او بیا یې خپل وصیت د لته بنخ شوی دی.

د دې شاعر قبر ته مې د زړه په اخلاص دعا وکړه او په افسوس
مې د ده د قبر شناختو ته وکتل. د اشاعر «سید کمال» نومیده چې
تمول عمري د «ببوجانۍ» په مینه کې د سوځنده کې سندرې ویلې دي.
او د ده سوځنده غزل دې ربابونه وچ کلک کړي او د پېرې سرېندې
په فریاد راوستي دي.

سید کمال تقریباً (۷۰) کاله پخوا د مینې ژوندون تیر اوه او د
«بیوه» د غم سندرې یې ویلې.(۱) د غه سفرنامه په ۱۳۲۸ کې کښل شوې.

---

(۱) رښتین صدیق الله، د ننګرهار ننداره، ۴۹ - ۵۰ مخونه، پیښاور، ۱۳۷۴ لمریز کال.

## - هنري ژوند:

د سيد کمال د فن وړانګې د ننګرهار او په نورو ډېرو پښتنو سيمو کې خورې دي. دی ليوالتيني شاعر دی چې په ډېر جرأت په خپل فن کې د خپلې معشوقې «ببو» نوم کښېږي. د ده به داسې شعر پيدا نه شي چې په هغه کې د «ببو» نوم نه وي راغلی په تېره بيا د شعر په مقطع کې. نو د ده شاعري د هجر په سوزنده غرونو کې د ببو د نامه تر سيورې لاندې ساه وېستلې او تر ننه يې دا دی د شاعرۍ وږم خور دی. د ده د شاعرۍ د پيل خبره هم د ده د عاشقانه مزاج په کړيو او د ببو پسې په ليونتوب کې نغښتې.

## د منځپانګې له مخې:

لکه څنګه چې مو مخکې وکښل د ده شاعري د ببو په عشق کې نغښتې نو د منځپانګې له مخې د ده ډېر شعرونه عشقي بڼه لري. د ببو په عشق کې دومره ستړی شوی او دردېدلی چې نور يې د ده نوم هم په زړه کې پټ بنا دی پرېښی او د خوشحال بابا په پل يې پل اېښی:

ز خوشحال کمزوری نه يم چې به دار کړم
په ښکاره نارې وهم چې خوله مې راکړه

نو دی لومړنی ولسي شاعر دی چې په ښکاره د خپلې معشوقې نوم په

د ډېره هنري بڼه کښي :

زه سيد کمال چې دلته اوسم د ببو لپاره
چې ببو نه وي زه د کوز کلي مياګان ځه کوم

حيران زه سيد کمال يم ببو ستا د مخ رڼا ته
دا نور يو خدايي نور و تر سبا چې بليدو

سيد کمال د ببو درکې فقير ژاړي
کنډ په غاړه مدام ګرځي لوغړند

سيد کماله خوشالي په ما حرام ده
مروره تا نه لاړه ببو جان

ببو چې جادو وکړ د خپل سحر په ميدان کې
دفتر د طلسماتو سيد کمال سيزلی دی

څه نيسه کماله ببو که په سينه پورې
چې وايي تو هتو نه پرې مدام داښګوال



اووم

ورشه یه ریباره سیدکمال ته داسې وایه
تورلیمه دې فرش کړه ببو جان ږدې قدمونه

نوم دې هوا جانه ده خلکه دې ببو بولي
ستا د درملنګ پتنګ قسم چې سیدکمال دی

یا په یوه لوبه کې دی خپلې ببو ته د ریدیو ګلونه څومره په هنر ډالۍ کوي:

ریدیه ګله ریدیه ببو جانې له دې ورمه
ترپایه

د سیدکمال د شاعرۍ ویښونه هم هماغه کلیوال ویښونه دي، په شعر کې یې هیڅ ډول بې وزني نه ښکاري. په ډېره روانه او فصیحه ژبه یې شاعري کړې. د ده په شعر کې یو ډول ځانګړې خوږلني او موسیقیت پروت دی، د ده سپیڅلې مینه او د ببو نوم د ده شاعرۍ ته یو ډول ځانګړې خوږلني ورښي اوس د ده نوم او شاعري د ببو له نوم سره تړلې ده.

د ده په شاعرۍ کې کیدای شي داسې ځایونه تر سترګو شي چې په وینا کې یو څه ستونزه پیښه کړي او وزن مات کړي، خو د نورو ولسي شعرونو په شان د ده ژبه هم کلیوالي ژبه ده، له خپلې لهجې نه یې هم پکې کار اخیستی او جمدار رنګه د شعر ژبه یې د محاورې ژبه ده نو که د محاورې

د شږبې په توګه ووېل شي، لنډ بیا دا نیمګړتیا په کې نه ښکارې او شعري څرنګه چې په موسیقۍ کې کېنل شوی نو د بې وزنه خبره یې د موسیقۍ پردې له منځه وړې صمدا رنګه په یو نیم ځای کې د قافیې د جوړښت په خاطر د کلیمې اره بڼه هم بدلوي چې د غه ټولې نیمګړتیاوې او خصوصیات د ولسي شعر جوتې بېلګې دي

## ۵ـ د جولې (شکل، له مخې:

د جولې له مخې سید کمال هم د نورو ولسي شاعرانو په شان په ملي وزنونو کې شاعري کړې. د ده ډېر شعرونه د غزل په چوکاټ کې په پښتني رنګ او سکښت کېنل شوي.

د غزلونو تر څنګه یې چاربیتې، بدلې، ټپې، ټکې او لوبې هم کېنلي. دی د خپلې شاعرۍ په جولین اړخ کې هم یو ځانګړی سبک لري.

د ده عاشقانه مزاج، اسویلو، بیلتون، مایوسیه د شاعرۍ د ـ ویونو په او د نګ یو بیل ډول اغیز کړی دی.

# دا ټولګه

مالهٔ کوچني والي د سید کمال شعرونه د ولسي سندرغاړو له خولې اورېدل ، د ده شعر او شاعرۍ سره ان لا له هغه وخته بلد وم چې د پښتون په دويم ټولګي کې به زده کړه بوخت وم ، کوښښ مې کاوه چې د ولتي وتلو شاعرانو ځانګړې ټولګې راټول او چاپ کړم . نو د دغو شاعرانو په ډله کې یو هم د ننګرهار د شګې سید کمال و . د ده د شعرونه مې له هغه وخته د ولسي ـ سندرغاړو له خولو اورېدل ، بیا مې پښتني سندرې دويم ټوک او ولسي سندرې لومړی ټوک په ګوتو راغلل له هغه سره مې ټول شعرونه پرتله کړل له پرتلې وروسته مې دا هڅه وکړه چې شګې ته ولاړ شم او هلته هم له ځایه د ده د شعرونو پوښتنه وکړم . خو تر دې مې د مخه په پېښور کې له یو شمېر اولسي سندرغاړو سره هم ولیدل له هغوی مې هم یو ه نیمه نمونه وکښله بیا را ته د پښتو ولسي سندرغاړي سید عالم په بوډیالۍ کې د ډګروال صابر او معلم « اکبر » نومونه یاد کړل . بالاخره مې ځان دغه سفر ته چمتو کړ ، له ګران نوښتګر او غزلبول شاعر سید الیاس صداقت د بوډیالۍ او سیدونکي سره مې د اخره غوټه کړه چې بوډیالۍ ته به ځو او ما به له ډګروال صاحب او معلم صاحب « اکبر » سره مخ کوي هغه به ورین تندي زموږ تګ ته هرکلی ووایه ، په دې یون کې زه ، ځوان شاعر عبدالغني هاشمي او یو ځنبله صداقت ګډون لاره ، له یوې لنډې

ښيي خوراک او څښاک وروسته د ډګروال صاحب په لور وخوځېدو. صداقت صاحب په لاره کې يو بل په سترګو پوهوند او ميلمه پال سړي سره مخامخ کړو، هغه هم را ته د سيدکمال يوه نادره بيلګه وړاندې کړه، خو ناروختيا، کمزورۍ او نابينايي د زړه له زوره غوڅولی و، نو بيا د ډګروال صاحب ديرې ته ولاړو د ډګروال صاحب په ډېر ورين تندي موږ ته هرکلی ووايه، بيا يې په خپله حافظه زور واچوو او ښايسته ډېر شعرونه يې د معلم صاحب د "اکبر" په ملتيا راته — راکړل.

همدارنګه نوموړي ووېل: سيدکمال ښايسته ډېره شاعري کړې خو زموږ په حافظو کې د هغه د شاعرۍ اوس ډېرې کمې نمونې خوندي دي.

زه په دې پوه يم چې دا اثر به نيمګړی وي، خو ما تر خپلې وسې دا شعرونه په دې هيله راټول کړه چې له يوې خوا دا پاتې شوندي، بيلګې خوندي پاتې شي او له بلې خوا که کومه بله بيلګه له چا سره وي هغه بيا دا کتاب بشپړ کړي.

په همدې هيله

لعل پاچا ازمون

د شامرد خان ښګه - جلال کوټ

۲۰ / ۱ / ۱۳۷۷

يوولسم

ستا په غم راځي په ما باندي خفګان
په ژړا ژړا مي سره شول تور چشمان

خطايي که له ما شوي ده دلبره
عفوه غواړمه په ما شه مهربان

راته وګوره ویچ کلک لکه رباب یم
همیشه په ما راځي دغم باران

جدايي دي ماته اور د دوږخ ښکاري
مه سیځه په دغه اور کي مي خوږ ځان

سید کماله خوشالي په ما حرام ده
مروړه تا نه لاړه ببوجان

زه چې بند شوم ستا د زلفو په کمند
یم خوشحاله چې یم پروت په دغه بند

عاشقي به هله ښه عزت پیدا کړي
چې شي تړونه د عاشق معشوق پیوند

ژوندګي د عاشق کله شي د دنیا کښې
بې له یاره خپل عبث ګڼي ټول ژوند

یا دا ستا د زنې خال دی لکه ستوری
یا نبات غوندې دا ستا د شونډو خوند

سید کمال د بیو دړکې فقیر ژاړي
کله په غاړه مدام ګرځي لوغړند(۱)

---

(۱) لوغړند - لوغړن

ستا د زلفو دام کې ګیر یم لیلا
ستا په در کې زه فقیر یم لیلا

د سرو شونډو یو جام، اوس یې ما ته کړه انعام
زه به ستا تل دامنګیر یم لیلا

زه تل د تا ته ژړېږم، په غم کې دې کړېږم
په غمو کې دې زهیر یم لیلا

یا راکړه خپل وصال، یا ما کړه ته ژر حلال
چې په نړۍ خوشحالي تېر یم لیلا

ستا په غم کې سید کمال، آئبو شینکې د خال
ته پاچا نه دې وزیر یم لیلا

کشکي کمکی مې وای چې څې ته لیدای غمونه
هر طرف چې گورم بیلتانه ینبسي دامونه

گرانه عاشقي ده په رښتیا چې د خوبانو
ټول عمر مې تیر شو په انگار په کړاوونه

خدایزو یې لا لیرې ستا به هیر او که په یاد یم
در ته دې ولاړ یم د ره لاسي کړم سلامونه

د هجران په اور ستي یې راشه راشه ځان سیراب کړه
ما درته نیولي د سرکو شرندو سرونه

ورشه یې زیارت سید کمال ته داسې وایه
تور لیمه دې فرش کړه[1] ایبوچان بدې قدمونه

---

(1) کر - کړه

ما ستا جور وجفا په خپل ليمو منلی دی
يار خط ليـزلی دی

* * *

سور شال يې کړو په سر بيو سيل ته دګلزار ځي
خپل غم دی په ما زور کړو تا ته چا ويلی دی

زه تاله چې ولاړ يم سلامي دخپه لپاره
سبق دعاشقۍ مې د استاد ويـلی دی

خوبان دي چې ظلمونه کړي مدام په ده دي خوار نو
بنه نه وو نه دعاشق معشـوقو تړلی دی

بيو چې جادو وکړه دخپل سحر په ميدان کې
دفتر د طلسمانو سيدکمال سـيزلی دی

لاس واچوه ببو د سین شمال وچلیدو
شمال چې را بنکاره شو ستا زلفان وړ پیدو

دا زه کمبخت مدام د ستا په وصل نه مړیږم
که تل راسره کیني نه یم ستا د مړیدو

دا ستا بانه گوزار کړي د برچو په شان په ما
که سل گوزاره وخورم نه یم زه د بچیدو

لږ رحم په ما وکړه یه ظالمې رب لپاره
پتنگ په شانې سوزم نه یم نور د سوزیدو

حیران زه سید کمال یم ببو ستا دمخ رڼا ته
دا نور یو خدایي نور و تر سبا چې بلیدو

زه ژاړم ببو خاندي په سرېي کړو سور شال
ما ولیدو په خپله بلیده لکه مشال

زما په خوار نصیب کې ازلي برخه بر داوي
چې بند به یم ما شوم خوندي مدام په خط وخال

د یار په رضایت کې ما قبولې کړې خوارۍ
رضا یم خپل اشنا نه که مې اوس څې شړ ومال

د څه د پاره خلکو تومتي شوم د خوبانو
ونړ وجلی نه شم یمه پروت بې پرو بال

څه نیسه سید کماله ببو ګډه په سینه پوره
چې وایي تو متونه په ې مدام دا شګي وال

باري ژاړم ستاله لاسه همیشه په کوکوکوکو
دمرغۍ غوندې مې زړه وړې دبیلتون باسنه په نوکو

ستا دسترګو له دهشته تیریدی نه شم په لاړې
کنج پانه دې خنجري دي لاس دې پورې کړ په شوکو (۱)

عشق هسې لوړ مقام دی چې مکان یې لامکان دی
باري ستوری داسمان دی مونده نه شي په زړکو

بومې دا نصیحت واوره چې هیچرته مین نه شې
دعنقا په شان مې شپې شي دلوړو غرو په څوکو

ستا یاری له څه وصال دی چې وصال دی څه مثال دی
لکه ستوری داسمان چې مونده نه شي کوز په څمکو

یو دوه سیلاب چې راغی سید کمال غریب یې یوړ
باري هیڅ لاس ورنه کړ خدای ناترسو بدسلوکو (۲)

---

دا بیتونه داسې هم ویل کیږي :

(۱) : بیا به هیچرته ورنشم ستا دسرو سترګو په لورې
کنج بانه دې لاحبري دي لاس یې پورې که په شوکو

(۲) : چاخو لاس ورله ورنه کړو خدای ناترسه بې سلوکو .

دې پيمخو هلکانو وويشتم د زړه په سر
دواړه سترګې يې ګولۍ دي رسوي څکه ضرر

يا پيروى د سيد دى ياجوهر دى د فولادو
يا مني دي د ميزان يا ديار د زني سر

سپينکي غابني په خندا لوڅ که هرعاشق ورته ريږي
وطن لوټ کړو مهرويانو لري سترګوکي اثر

يا سپين مخ زما ديار دى يا شغلې دي دآفتاب
يا ستورى د سبا دى چې راخيژي په سحر

لنګ وهلي دي په مخو پسې ګـرځي سيدکمال
خدايه ته يې رانصيب کړې چې يې زه شمه نوکر

نیم مې شو قلم لیلا د غم مې حال دی
غم دې په ما دم په دم زیاتیږي څوېم کال دی

زلفې دې په مخ کړې دام، نیسي د هوا مرغان [1]
خلاص به ترینه نه شم لیلا تور وربل دې جال دی

ولې ډیر فریاد کوې، مور به یې د یدن شي ته
وخت خوګوره شته لا ډیر چیر بانګ و خت دوصال دی

سور پیزوان دې نور دی، تجلي یې د لمر خیږي [2]
سره نتکۍ دې سره لمبه سکروټه یې لال دی

نوم دی ببوجان دستا، ټول خلک ارمان کی [3] ستا [4]
ستا د در ملنګ پتنګ قسم چې سید کمال دی

---

(۱) دا نیم بیتي داسې هم ثبت شوي: تور وربل دی دام دا ستا نیسي په هوا مرغان.
(۲) 〃 〃 〃 〃 : سپین مخ دې مهتاب دی شغلې یې په هر لوري ځي.
(۳) کی: کړي.
(۴) نوم دې هوا جانه ده خلک دې ببو بولي.

څه دې غرض دی ملا زما د حاله سره
و څه سبق دې ضبطوه د قیل و قاله سره

عاشقان واړه بت پرست دی تلې لموڅ نه کوي
څه دې غرض دی د ثواب لوی د وباله سره

نه مبنا پیری یم د حرم تږې ملنګ د دوهی
کله جوړیږي ستا شړی زما له شاله سره

دې زمانه کې په ستانه باندې اتبار نشته دی
پړلاره تیرشو او بس یې و نغښته له باره سره

دې زمانه کې په اولاد باندې باور مه کوئ
چې دوی لویږي جنګوي به مور له پلاره سره

که جنتونو ته مې بیا یې زه یوانې نه ځم
خو دو نو خونه قبلوم له سید کماله سره

ودې سوم له مینې زه خراب تراب کباب یم

اوښکې مې سېلاب دی په سپین مخ باندې غرقاب یم

تمام خلک مې تماشو لره دلرې ملکه راغلل

لوی واړه راپورې خاندي حق حیران په دغه باب یم

لکه کانی د اموده یاب کې پرېوځي داسي لاهو یم

دوباره به ترې را نځه نه شوندی په مرو حساب یم

لکه خس په سیلاب باندې چې کیدې داسې سوځم

حلال کړی دی بې تیغه زه په بند دکوم قصاب یم

دواړه ستر ګې مې کړې لتوری سید کماله ستا کښتی له

په مثل ګانو به دې مې کړه نه نا تر سه د پنجاب یم



چې بندي دې کړم د زلفو په زنځیر دلربا

کوم ګناه را څخه شوی کوم تقصیر دلربا

لکه جعد په شانې پټ وم په پرده کې

رسوا شوم په عالم کې لکه دکشمیر دلربا

تیک دې کاندی پاچاهي ستا پر خسار

همنشین ور سره واړه خان وزیر دلربا

زه سید کمال غریب بندي شوم په پنجره کې

وچ ګوګل غوندې زخمي غوځ مې ضمیر دلربا

صبحدم په وخت او به کښه شبنم شه
دګلونو په دهان کې خوش خرم شه
خفګان مه کوه له سره خوشحالي کړه
په خندل صبح صادق د صبحدم شه
د توکل پښه په پښو کړه پسې درومه
ویده مه کېږه د مطلب په طرف سم شه
په چاودلي زړه فریاد د ښکلو ښکل شي
د ګلونو کتابت کې مات قلم شه
خادمان د ښکلو ډېر دي سیدکماله
خپل جانان ته له هر چا نه مقدم شه



لاړه دنیالاړه دمرغۍ په شان تېزېږه
هر طرف چې ګوره مېوه ورځ له بل بېتره
لاړه دنیا لاړه خلکو وکړۍ ورته پام
بیا به هسې ونه یې مرګي یو رو ناخبره
شپه نوره تیاره ده تاسي سنه ورته پام وکړي
مخ کې لوی دریاب دی چې کډ نشي بې ګو دره
ژاړي سیدکمال غریب همیش دبته دعا کوي
تینګه مې نیولی ده لمن د پیغمبره

ما ته اوښه په زرګر جوړه کړه پیزوان څه کوم
ورک دې شي موزیان څه کوم

خلک پېښور ته ځي عالمه د سبق لپاره
زه چې په خپله ملا نه یم ملایان څه کوم

خلک کابل ته ځي عالمه د مېنې لپاره
نما د یار زنه منه ده کابل جان څه کوم
خلک لغمان ته ځي عالمه د زیارت لپاره
چې محبت لار صاحب پکې نه وي زه لغمان څه کوم
زه سید کمال چې د لته پروت یم د ببو لپاره
چې ببو نه وي زه د کوز کلي میاګان څه کوم

خلک زمین او اسمان د واړه سرګردان بولي
زه چې په خپله سرګردان یم سرګردان څه کوم

خلک کوهدامن ته ځي عالمه د مېنې په نامه
زما د یار سینې منې دي کوهدامان څه کوم

راولوتو شمال بوی دیار ماته راځي خبریم چې سبا سبکلی ریبار ماته راځي

* * *

دوهم په غاړه ناست یم مدام رب ته په خواست یم

بلبل مې باغ ته تللی په چغار ماته راځي

* * *

په مینه کې رنځور یم اوس تاپسې چور چور یم

ژړا فریاد مې خیژي کله وار ماته راځي

* * *

د سیل لپاره لاړې پیا راغلې نبې همغاړې

بلبلې مسیلانځه بوی د گلزار

* * *

دا سید کمال فقیر دی ولاړ در ته زهیر دے

نه یم لکه منصور چې وار د دار ماته راځي

*

ږه دې يم هير کړی ، ږما نه يې فراموش دلبره

ږه دې کـــړم بې هـــوش دلبره

* * *

زه ناست ديوال تر څنګ وم غمان سره په جنګ وم

ستا غږ راباندې وشو، سمدستي شومه په هوش دلبره

زه دې کـــړم بې هـــوش دلبره

* * *

حيران زه هلته ناست وم ديدن ته دې په خواست وم

چې غم دې په ما راغی، ما دغم پياله کړه نوش دلبره

زه دې کـــړم بې هـــوش دلبره

* * *

ږما نشـــتـه دلال غافل يم ستا له حال

غمان چې درته خاندي، ږما وينې شي په جوش دلبره

زه دې کـــړم بې هـــوش دلبره

* * *

ږولن سر يې ساړا له خلکو شوم جدا

په عشق د ببو جانې ، سيد کمال شولو کند پوش دلبره

ږه دې کـــړم بې هـــوش دلبره

ځوبه ارمان د استاد سپيني څولۍ کړمه      راوړه پيمانه د د بدن درپسې مړ مه
توره لونګين توره دې زلفان دي      توره دې بانه توره دې چشمان دي
زيړه ښکې دی د پانوس رنا کوينه
حسن دې ډېر دی سينګار مه کړه      په عاشقانو دا کار مه کړه
ټول عاشقان دې غلامان نيولي د بينه
مخ دې ګلاب ښونډې غوټۍ دي      خمارې سترګې دې ګولۍ دي
زه يې ويشتلی په خمارو سترګو يمه
چې تا را ياد کړم ګمان مې ډېر شي      په زړه مې غم د تا چاپېر شي
دا سيد کمال عاجز دې د ډېر ارمان کوينه

•••✕◆✕•••

غم د ببو جانې لیونۍ لکه مجنون کړمه ‌ ‌ ‌ نور به څه ژوندون کړمه

هی توبه له عشقه

ګیر شوم نه خلاصیږم ستا د مینې بوګلي زه ‌ ‌ ‌ ستا اواز به کله په غوږو واورم بلبلې زه

ستا مینې بلبلې زه اخته په جګر خون کړمه ‌ ‌ ‌ نور به څه ژوندون کړمه

هی توبه له عشقه

کشکې چې پیدا اېدې نیمګړې دنیا زه نه وای ‌ ‌ ‌ زه که په دنیا وای مینتوبه هلته نه وای

ورک شي مینتوبه در په در دې بیلتون کړمه ‌ ‌ ‌ نور به څه ژوندون کړمه

هی توبه له عشقه

بې ګناه مې خله د غماز په مخ رټې ببو ‌ ‌ ‌ ما په کومه سبب خیلې درګاه څنې شړې ببو

زه دې سیک وریه د غمازانو په لمسون کړمه ‌ ‌ ‌ نور به څه ژوندون کړمه

هی توبه له عشقه

واخله سید کماله کند کچکول د ګدائۍ په لاس ‌ ‌ ‌ ګرځه در په در همسا کونک د جدا ببې په لاس

مینې د ببو په خاورو دوب لکه قارون کړمه ‌ ‌ ‌ نور به څه ژوندون کړمه

هی توبه له عشقه

شولي بلبل د سر دړو په هر گلشن لاړې
منه په فیشن لاړې ، الله دې مل شه

* * *

ته يې بلبله خرامان شوې په سيل روان شوې
چې سيل دې وکړو، په خوښۍ مخ په چمن لاړې
منه په فیشن لاړې ، الله دې مل شه

* * *

د شهزادگۍ په خېر منه خوی لرې هم په هر گل قلنگ د بوی لرې
گلاب دې بوی کړو ، بيا په لوري د سوسن لاړې
منه په فیشن لاړې ، الله دې مل شه

* * *

ته په خوبانو کې اميره يې په خوی فقيره يې
نو ومو ولاړې چې ته خالي په خپل کمن[1] لاړې
منه په فیشن لاړې ، الله دې مل شه

* * *

د بېوجانۍ په فرقت دغمژانو په ضيقت
اې سيد کماله په ارمان مخ په کفن لاړې
منه په فیشن لاړې ، الله دې مل شه

---

(1) کمن - کمېنڅ

څنې دې زومبک زومبک، پاس په سینه تال وهي
اوربل دې ېړک په ېړک کله چې شمال وهي

چار دې شم لیلې لیلې
په غم دې شوم خولې خولې
زړه مې شو ځولې ځولې
وصل یم نشو نشو قلم زما اقبال وهي

دې ونیوم بازار کې زه
څنې وهم ګلزار کې زه
نه یم په قرار کې زه
ګیرې کړمه هک وپک لاړې مې دلال وهي

مینې دې ستې کړمه
ډیرې تو مستې کړمه
رسوایې زیاتې کړمه
تورې وروځې ځنګ په ځنګ برېښنا یې شین خال وهي

غم دې لوغړن کړمه
ورپیت یې په خوبلن کړمه
پروت یم خشکدن کړمه
زلفې دې اړکه ېړک سر د سیدکمال وهي

پېزوان دې اوېزان کوی لړزه پرې زلزله ده
د پاڼو په شان رېږدي د خزان پرې غلبله ده

پېزوان دې اوېزان په سرو لبان کړلو دلبرې
قلم دې په ضمیر کړم بې ګناه هم جادوګرې
عنبرې دې ثمرې د لیلا لبې شکرې
یعني په ما راغلې اوس په ما کړې نګه حمله ده

یعني به ولې نه وي زما ګوګل دی سپینې واورې
راځه یکې دیره شه د غماز په سر که خاورې
په نیمو شپو راده ومه که زما خبرې اورې
لا نیه ماته ګرانه ما په تا اینبې کله ده

بنګاله بنګاله ده په زما د زړګي لالـــه
راځه چې خوتګی درکړم چې زړګی دې شي خوشاله
یوازې ولې ژاړې په ملنګه نسید کماله
جوړه به مسره ژاړه چې په مونږ چپه حاله ده

وخت د پسرلي دی د پنجاب جونې کابل ته ځي

پوهٔونه د توتیانو سلامي شیدا بلبل ته ځي

*

وخت د پسرلي دی د ببو وربل خوریږي نا

مخ باندې مې اوښکې د باران په دود وریږي نا

څه د غم ساعت دی چې له ما به جدا کیږي نا

سور پیزوان داستا داوښکرو ښه نها دل ته ځي

*

وخت د پسرلي دی سمه وغریږي ګلستان کسه،،

هیڅ پې نپوهیږم زما عمر یې خزان کسه،

اوښکې مې بهیږي په ژړا مې لوند ګریوان کسه

خدای دی داسې نه کړي چې بوبه له ما بل ته ځي

---

ﻻﻻ ۲ ۱ کړ - کړ

وخت د پسرلي دی نه تکیه پرورد گار که

تاله يي د رنه کرمه ابا مې دې رب خوار که
گل د نو بهار یم راشه سیل می د گلزار که

په د ډیرو ارمانونو می لاسونه تور وربل له څي

★

پرې خو به دې نه پردم که مې لاس د ربانډې برشي
یا به مې سر غوڅ ستا د چشمانو په خنجر شي
ستا به وي گریوان زما به لاس ورځ به محشر شي
زاري سید کمال غریب په چیغو پردي خپل ته څي



ودې سوم محبوبې دا ستا خوی د جادوګرو دی
زړه دې رانه وړی په وړو وړو خبرو دی

* * *

سوې په خبرو راته ښکارې چې رنځور شوې
سلګه د دار په سروهې په شان ته د منصور شوې
راشه دارو واخله کنه زړه به دې ناسور شوې
تا ته مې ساتلی زړه کې ځای سپه دا فنسرو دی
زړه دې رانه وړی په وړو وړو خبرو دی
زه دې پرې بندې کړم لیلا ستا زلفې زنځیر دی
خلاص به ترې نه شم چې مې تاوې له ضمیر دی
مرمه ساه مې خیږي د واړه لبې د اکسیر دی
جار دې د خبرو شمه خوندې د شکرو دی
ودې سوم محبوبې دا ستا خوی د جادوګرو دی

مه کوه نخرې زه خو دې بې تیغه حلال کړم
ستا خاطر د پاره احتیاج د هر دلال کړم
زه سید کمال تا لرم ستا د سپینې خولګې سوال کړم
در ته دې ولاړ یم زما شان د مسافرو دے
ودې سوم محبوبې دا ستا خوی د جادوګرو دی

*

لکه توتي به ګرځيدم په هر ګلشن باندي
ځان مي موړ نه کړ دګلونو په ديدن باندي

لکه توتي به ګرځيدي په هر زمان ژاړي
دخداى نه سوال کړي زما خال د زنخدان غواړي
ته ځوانيمرګ شي مرور په څه ارمان لاړي
لبي مي ستا دي صرف مه کړه په خوږو نباتي

ديدن زما دګل غوټيه ستا نه قربان واخله
په چنګوبريتو سپينو غابنومي لبان واخله
ته شه يوسف نه زليخا لز مي پرسان واخله
نيګۍ مي سوځي ياره ستا په دي ګفتن باندي

دیلې مادړ ته دروغ ښکاري کبرجن لیلا
یو خندی لاله کړشین خال د لنډی زنې لیلا
نه صدقه شم ستا تر ځانګې وانګې ونې لیلا
سلګۍ وهم په درد یې پس وت یم ځنکندن باندې

***

لکه توتی فریاد کوم په هر چمن ژاړم
زه خدای ته سوال کوم ستا خال د زنخدان غواړم
نامردي نه ده استاد وصل په ارمان لاړم
وروستی دیدن دې سړ لا تیت که په کفن باندې

دا ځنکدن دې شي زما که به وړګاړیمه
نه مي خوب شته نه مي خندا جدا له یاره یمه
د سید کمال مړاوو کتو پسي بیماره یمه

پیکي شانه که لوړې بیروڼ څوانان ولاړدي
سپین ږیري یو نښته دي ټول هلکان ولاړ دي

*

پیکي شانه به کړمه ، سترګې به توړې کړمه
که ځوانان لاس راوړي کچل به پوړې کړمه
په یاریکه نه پوهیږم ، خبرې نوړې کړمه
ما به پرې مړه کړې موړې بیرون سپاهیان ولاړ دي

*

پیکي شانه که لوړې بیګاه دې یار راځي
دکټ بازو ونیسه شومه قرار راځي
زلفې دې تاوکړه لوړې ستا په سلام راځي
تسل یې وکړه لوړې چې ر ییاران ولاړ دي

*

که رښتیا وایم موږې چغل بازي مـــزه کا
چې سور مې کټ وي موږې سره برستنګۍ مزه کا
چې سبا ان دخوب پاڅم تودې هګۍ مزه کا
ورته مې ورکړه موږې بیرون خانان ولاړ دیا



سید کمال وایې مدام چې زړه مې نه صبرېږي
که دلته شم بندي اشنا مې نه هیرېږي
دشاه اصیل دباغچو ګلان زما یادېږي
وزر بچي شه بیرون چې شنه توتیان ولاړ دي

ورورو نیسه په خوله کې د سوړکو شونډو سره ونه

په غاښونو به میده کړې سره شکې سره زنځیرونه

ورو ورو نیسه په خوله کې غونډه زنه ای بیداره

نادانه زه چارېږم ستاد غاښو له ویر هاره

ته کله بېنوایې د ګلونو له ګلزاره

اول اخره ستا یم څله وایې مسترونه

منت به ولې نه وایم زما د خوا بلبلي

په خوله باندې زمایې او په زړه باندې د بلې (د بلې یې)

له ما سره وعده کړې ده له مونږ سره څملي

راوړې سپینه زړګي مې د غمونو انبارونه

ملا ټینګه کړه جانانه بیم ولاړ په ستا پسې پت

اول او اخر ستا یم په مونږ دې وي لعنت

مونږ یا به بیا نه مومې تر ورځې د قیامت

ما ستا لپاره ایښې د یاسین بابا نذرونه

نذرونه به خود و دکړې چې ته داسې شینکی خال لرې

تور دې لونګی سپینه او زړه نتلې کې لال لرې

مدام چې په سلام بوړخېل ځانته سید کمال لرې

سپینه خونګی ودکړه ځګه کړې د رنه عذرونه

د ليلا په لاس کې سرې او شنې ګجرې دي    پوړنه کيږي ترينه هر رنګه سازونه
ستا د غم او ښکې زما په مخ خورې دي    چې اشنا مې شا مدام کړې مکيزونه

★

د هجران له لاسه د وب شوم په درياب کې    را رسيږه ښه دې وار دی د ستګيره
هيڅوک نه دی د ليلا غم په رباب کې    عمر توله را باندې تير شو بې تکبيره
د پتنګ په شان وسوم په درياب کې    رب دې خلاص کړي عاشقان له دې زنځيره
اوس قسم مې د قران په سيپارې دي    هر سبا د بيلتانه دي آوازونه

★

د هجران له لاسه ناست يم په تورتم کې    ربه راولې هماغه مخ ځراغه
شپه او ورځ رهم تالونه ستا په غم کې    چې جبين دې وينم تور موزيګی زاغه
کنج بانه مې شو وراسته د ستر ګونم کې    د لاله په شان مې جوړ دی په زړه داغه
سرغلې دې په سره پيزوان سپيرې دي    تا ورې زلفې دې سينه باندې مارونه

هجران څه غواړي کم بخته نوبهار دی — چېتکي وکړه چې زه نه شم خـــرا بـه
سپین هیکل سپینه اوږه بل مې شین خال دی — که دې وليد ته به خلاص شې له عذابه
په سرکړی مې عجب زر زري شال دی — درته وايم ځان بيدار که ته له خوابه
زما وستاد يارۍ هرچيرې ناره دي — ليلا تور وربل دې جال نيسي بازونه

*

تور وربل مې الوول له تا نه جار شه — زه پوهيږم ته زما د زړګي سر يې
سر دې کېږده زما ځيږکې پرې خمار شه — چې په مينه کې زما تل دربه دريې
دريه خوله دې دا زما زړه انار شه — د يارۍ خبرې واوره برابر يې
سيد کماله د محبوبو تل نخرې دي — نهوي د عاشقانو د زړه خونه

سرود غزيزي په دې باغ کې د بلبلو
د محبوبا په وربل ونه ږدي د گـلو

* * *

سرود غزيزي په دې باغ کې عجب شور دی
د محبوبا انگر جوړ منار د لاهــور دی
مخ د ليلا لکه مثل بل په کې اور دے
زړه مې پتنگ په شان پر مخې منسکور دی
د غه سور گل دی که مې زړه وړي په منگولو

* * *

منگولې تل زه گرځوم په وينو سرې ستا
خونړيه نه لري پرواخم په اسـرې ستا
په خوږو اوړمه د خون زړگي نا رے ستا
که در ښکاره کړم د واړه سترگې په واړې ستا
لا س مې کړم پوهې د عالم په قتــلولــو

قتلول مه کوه نا ترسیږي ظلم کباري

گونډي محشر کي به کرم ستا دلاسه ناري

که وسوم و سوم «سیدو چي» لورجما داري

گریوان به خیري کرم لمن کرم گـاري ګاري

چي توري زلفي يي زیاتي کړي په سنبـلو

* * *

دا توري زلفي مي ځنګیږي په مـخ تـهـال

دننه زړه مي دی هـم بي تیـغـه حـلال

ریباره ورشه زما یار دی سیدکمـال

غریب سلګۍ وهي رنځـور دی خویم کال

اختیار مي کړی دخولګۍ دوړکــولـو

آهوچشمي گل اندامي ماه جبيني — نه دي وسوم ولې ولې څه د پاره

وسوم وسوم څوک مي نه اخلي مرضونه — نه پوهيږم ربه دا څرنګ تاثير دی
ليلا تور وربل دې چال نيسي بازونه — باز د زړه نيسي بيشکه هواګير دی
د هر چا له خولې نه خيږي دا غږونه — شينکی خال دې غونډه نهنګې امير دی
پاچايي دې شوه په لاس پاچا دچين يې — رسالې د ر پسې ځي شولې واکداره

سره لاله په هغه څکه نه رغونيږي — چې پرې وينې د عاشقو وي رون
د باغو توتيان به خود پرې خوشاليږي — چې ننوځي له باغو څخني کار غان
عاشقان به سرو لمبو درته کړيږي — هيڅ پروا دې په چا نشته ګل خوبان
عنبر بويه سنبل بويه خوشبويه — سره تو لبه دې پر سر کړې تيله داره

په وربل دې کتار کړي اشرپې — ترې چاپيره زمرد دکوه نور
صد هزار دې غلامان دې دکوکه — ډير مې سوي دي په اور کې د تنور
نه تازه يمه راغلي پر خواني — منګاړي ماته اميران لګه مزدور
تول خويونه مې اخيستي له شيريني — د خسرو او د فرهاديم جګره داره

زلیخا قصه پر زړه کې در په یاده ... په یوسف پسې یې وکړلې خــــوارې
همیشه په ژړا سروه نامـراده ... هر سړي ته وه له ورایه پــه زارې
هسې زه شومه په تا پسې نابناده ... بوجانه در پسې کړې شـــوګیرې
سید کماله سرې لمبې دې آتشینې ... ستا د مینې په مابلې تر سـهـاره

---

تاچې روپۍ کړې په جبین کې سورې
دلمر نه زیاتې ورنه خیژي شغلې
درپسې سترګې مشوې زما پسې بروې
په مخ مې جوړې شوې د وینو ولې

* * *

تاچې روپۍ کړې په جبین کې کتار
زما اجل ته تیارې کړې
بې د هجران نه عاشقي نه کړي خوند
تا په مکیز کې خلق خوارې کړې
د تا نه جار شه سپینه زنه مې قند
که شرم نه وای ما به نارې کړې
که زه د ستا یم یاره نو ولې چورې
تاچې روپۍ کړې په جبین کې سورې
خوږه مې غوښیږې، چې دې اورم ګیلې
په مخ مې جوړې شوې د وینو ولې

په خولې دیبار وایم دیبار مې نشته

په غوږ دې ورو ورو وهم غلې غلې

وار لتوم د راتلو لار مـــې نشتـه

ما نه مچه شو ستا سو کور وکلی

غم به مې څوک وخوري غمخور مې نشته

زما ماما زما نه لاس ؤ میـنــځل

په قلب مې سنځې ستا دوریځــو پرې

تاچې روپچه کړې په جبین کې سوړې

دم گړی دم وهم پرې مه کوه هیلې

په مخ مې جوړې شوې د وینو ولې

* * *

تاچې روپچه کړې په جبین کـې پیـوند

عالم دې خوار کړ لوړ ترلوړ کوي شـور

په زړه مې ملې دی ستا د مینې انـگـار

په دروند مې لگیدلی د ــــے اور

کوړه کوړه زلفانې ستا چمچه مـار

دانره سترگې دې خوړل کا منگـور

پرې دې وژلي ونځوړان کا سوړي

تا چې روپه کړې په جبين کې سوړې

موړ تـه دې لاړشم په سر با د کړم ايرې

په مخ مې جوړې شوې د وينو ولې

* * *

هميشه ژاړمه افسوس په بده

نه مې ودريږي د چشمانو گريان

که دوه مين وي رب دې ورکړي وصال

چې په نرگي پې پاتې نه شي ارمان

خبرمې يوسئ ترملنگ سيد کمال

چې درته وايي اوس به مري بيو جان

زړه مې توټې دستا پسې شو زړې

تا چې روپه کړې په جبين کې سوړې

مجنون نه راشمه پناه کيږي ليلې

په مخ مې جوړې شوې د وينو ولې (۱)

---

(۱) هيواد مل زلمی، اولسي سندرې، لومړی ټوک، ۱۰۹، ۱۱۰ مخونه پښتو ټولنه، گوندي مطبعه، ۱۳۶۱ لمريز.

شهزاده تا چې کول داسې کار ونه
خدای د ر ییبنه کړ ازل برخه دې خپله
ستا په غاړه کې دسرونه او هارونه
گرځېدې به د حرم په باغ کې گله
په ژړا به یې ویل په زوره زوره
افسون مه کوه دې ظلم په موږ باندې
په داد وه کې هغه غوره جلې گوره
په اوله کې داغلې یو د وړ بندې
. . . . . . . . . . .
چې دې خوښه شي هغه به دې وکاندي
خدای د پاره پاڅې خلاص که سوالونه
که ناغه راځي غواړې یو په سله
ملا بادر ویلې په رب مې دې سوگندوي
که تمام ښاپیرۍ راشي ښنواتې
نیم بولا به په کونړه کې زما بندوي
ځنې مرگ دی زیاتی به ښئي سپاتي
چې پیر دي مالونه خوږ دي عجب یې خوند دی
غله دې مین کېده په ادم ذاتې
څوک چې بل مالت نه ځي بایلي سرونه
عاشقۍ په دنیا د پیره ده مشکله
چې ملا بادر له قهره سترگې سرې کړې
ښاپیرۍ نرۍ را روانې شوې مخ سپرنه

نیم بولا په چغو خوېند وته ناري کړي

اوس مي غوږ نږه له ژوندونه لاړ سفر ته

خوښي خلکو مي له لرې ننداري کړې

چاکتي نښو نما سنګلي بښـــــته

ښی منډری به مې پرتي وی په غوږونه

سنه نسوین جبین له مشک عنبر سنـــګله

نیم بولا هم په کشیږ کې یو کلا وه

هغه ښښې يې تر اوسه لا سنـــګار پرېږي

ملا بادر هم ورغی پر یانګیر ــته

س يې ورکه د تختي او تیر په مخ کې

چې جدايي کړی هډوکي وسې غوښې

سید کماله ته خوراشه کـــه مي ګوري

عجب سنګلي د ببو شیشکي خالونه

.. .. .. .. .. . .. .. .. .. .. .. (۱)

(۱) دا نیمګړې چاربېته د نیم بولا او نیم بولا د داستان اخرنۍ ده.

ريديه ګله کله د يديه ببو حباڼي له دې وړمه
ريدی کالونه حبکوا ببنی په اودبل کې بند په بند
مشکين خالونه مخې ته را غله ماويل زړه مې شو پيوسند
چې داسې نجونې زه وينم لا رې مې وکاندي چلند
پرې مې مړ به شمه د ګوټ پنا خنداکوې د نخوړ دې کړمه

●•●•●

پرې مې مړ به شمه د ګل غنچه ده زما زړه ترينه جړېږي
ژړا کوې کوږ د ادله خان وړ ته څه بانديا غوړېږي
دا پته بادي ساده خاني ده باره څوک که پوهېږي
د ښتيا وايمه پښتې سلګي د بې په ديدن پسې وهمه

●•●•●

د ښتيا وايمه پسې د نخوړ شوم چې بې ځشواږ مانه ده
خوشحال يم په دې خوګلې به راړا کړي را شه وړکه مې مانه ده
پرې مې موړ به نه شم د جنګي مينه د بادو پيمانه ده
ملنګ يم په ځان کچکول په غاړې اچوم خير بټولومه

●•●•●

ملنګ يم په ځان چې ته زما د اسرې ځای هغه شو وران
د مېچ په شانته منګولې مې ومړا نه تېر شولو دوران
ببلتون د اشنا کړی اش وړ پسې ژړا کوم په ارمان
سيد کماله خدای مې دې مړه کړي چې په تامينه يمه